# دثور د انقلاب حقیقت

د افغانستان د خلک دیموکراتیک ګوند د مرکزی کمیتی ارګان

چهار شنبه د ۱۳۶۷ کال
د ثور ۸
April. 27, 1988
اتم کال ۲۰۲ ګڼه
پرله پسی ګڼه ۲۰۵۶
دتاسیس کال ۱۳۵۹





## لس کاله کار او تجربه

پرون ورځ دوهان کال دثور اومه نیټه مو دثور دپر تمین انقلاب لسمه کالیزه جشـــن ونیوله دثور دپر تمین انقلا ب دلسمی کالیزی په جشن کی دزیار کښانو ، طبقو ،قشرونو او دټولنیزو بیلا بیلو ډلـو، سیاسی ګوندونو او ټو لنیزو سازمانو له شور او زوږ نسرلا ګډون ددی خر ګندوی و چی انقلاب اودهغه اندو نددټولنیزو بیلابیلو طبقو او قشرو نو ، دملی منر ګراو هیواد پالـــو ځواکونو زړونو ته لاره پرا ـ نیستی پمادی ځواك اودافغا نستان دخلکو په پر ګنیزځواك سمبال شویدی .

دثور انقلاب لس کلو نه ،زموږ دګوند او خلکو لپاره د کـار او تجر بی او زده کـــړ ی لس کاله و ، دانقلاب کلو نه، زموږ دټو لنی ټالتصادی ،ټو ـ لنیز ، سیاسی او فر هنګـــی وروسته پاتی والی په کثیر ـ السطوح وړانګو باندی د غلبی لپاره په پرله پسی او سختی مبارزی سره مشخص کیږی، ددغه اصل‌له مخی ویلای شو د انقلاب دلسم جشن دنمانځنی په مراسمو کی دخلکو کار نه ونیه اخستنه په واقعیت کـی دګوند او د هغـــه دلوړو او سپیڅلو ارمانونو د ټک لا ندی له انتخاب شوی لاری څخـــه دخلکو ددفاع په معنی وی .

دثور انقلاب دلس کلنـــی جشن ونبوده چی انقلاب‌له‌پخوا زیات لمخانه ددفاع قـــدر ت موندلی او دخلکو ترمنځ یـــی انګیزه او نفوذ په ټینګه تو ګـه پراخ کړیدی . دانقلاب دجشن پرتمین مراسم بی له شکه‌زموږ دخلکو‌بهترونو اوعقلو نو کـی دنیکمرغه راتلو نکی لپاره‌میلی ریلوړی ګړی او پیاوړی کوی‌دی.



دافغا نستان جمهوریـــت‌رهبری او میلمه هیئتو نـه د پوځی پریښ اودکابل د زیا ر کښانو دمار ش په‌مراسمو کی

د شیر شاه ابوی عکاسی

# دانقلاب دلس کلنی جشن



## دپوځی پریښ‌مراسم اود کابل‌دزیار کښانو مارش

پرون د۱۳۶۷هجر ی شمسی کال دثور اوومه د ثور انقلا ب دبریا لیتو ب د لسمی کا لیزی اوزموږ په هیواد افغا نستا ن کی دنوی‌نظام‌دبنسټ ایښودلو لمورځی سره برابره،له دغی ورځی څخه‌د هیواد دټولوخلکو دپرتمین جشن‌په تو ګه دملی روغی جوړی نوی بریا لیتو ـ بو نو ته د رسیدو په شرایطو کی د سلګونوزرو زیارایستو‌ـ نکو هیواد وا لو په‌فعالی برخی اخیستنی سره‌د‌خاصو مراسمو په‌ترڅ کی دکابل په ښار اود هیواد په ولایتو نو کی نمانځنه وشوه .

دا.خ.د.ګ دمر کزی‌کمیتی عمومی منشی اود افغا نستا ن جمهور رئیس او د وسله وا ل پوځ اعلی سرقوماندا ن ملګری نجیب الله د سپار داتو بجو په شاوخوا کی په داسی حا ل کی چی د هغوی دسپرلی موټر دیوی ډلی موټر سایکل سپرو لخوا بدر ګه کیده دثور انقلاب دلسمی کا لیزی د نما نځنی د پرتمین جشن په مراسمو کی‌د ګډون لپاره دپو ځی بر یښ اود کابل ښار اوولایت دزیار‌ـ کښا نو د مارش د پیل کیدو سیمی داستقلال‌واټ‌ته تشریف یووړ .

ملګری نجیب الله لوژتـــه نږدی د رسید و په وخت‌کی دتشریفا تو قطعه معا ینه کړه اود تشریفا تو دقطعی‌ددرنا وی دمرا تبو له‌منلو وروسته لوژ ته ورغی اود نورو ګوند ی‌او دولتی مشرا نو سره یی‌روغبړ اود احوا ل پو ښتنه وکړه.

له هغه وروسته‌چی‌په‌بر یښ‌کی شاملی قطعی دمر کزی قول‌ـ اردو دقو ماندان لخوا دافغا‌ـ نستان ددفاع‌وزیر ملګری دګر جنرال محمد رفیع ته ور‌ـ‌ندی شوی‌دافغا نستان جمهور یت ددفاع وزیر په بر یښ کی د شاملو قطعو او جزو تامو نو له معا ینی څخه ورو سته هغه لوژته چی په هغه کی دا.خ.د‌ـ ګ ،دمرکزی کمیتی عمومـی منشی او جمهور رئیس ملګری نجیب الله دا. خ. د. ګ.، مرکزی کمیتی‌د سیاسی بیرو غړی او صدرا عظم ملګـــری سلطانعلی کشتمند‌اود ګوندی اودولتی رهبری نو ر غړی او دوسله وال پوځ جنرا لان ولاړ وو روان شو د ثور انقلاب د لسمی کا لیزی په ارتباط یی دیوی وینا په ترڅ‌کی د انقلاب دارزښتو نو،د سراسری‌سولی دتامین ،خپلواکی، ملی‌واکمنی اود ځمکنی بشپړ تیا ددفاع په خاطر د هیوادد‌وسله وال‌پوځ دمنسو بینو تیاری څرګند کړ

ددفاع د وزیر د وینا دپای ته رسیدو وروسته‌دثور انقلاب دلسمی کالیزی د نما نځلوپر‌ـ تمین مراسم دتوپ‌له یوویشتو ډزو سره یو ځای د موزیک‌د ستری بانډولخواد افغا نستان دجمهوریت د ملی سرود پـــه خپریدو سره پیل شول .

وروسته د ځمکنیو ، هوایی اود هوایی مدا فع د ځوا کو نو دقطعا تو او جزو تا مونو د پوځی تعلیمی مو سسو، دسر‌ـ حدی ملیشو د ځوا کو نو د انقلاب دمدا فعینو ، د ځوا نو کو ماندوګانو اود کابل ښارد کو ماندوګانو اود کابل ښارد موسسو د ملکی دفاع د ډلو د پر یښ‌مراسم په ځانګــــړی نظم اود سپلین سره پیل‌شول د اردو او څارندوی او دولتی امنیت د وزارت د زغره والو موټوروالو اوپلیو قطعات‌اوجزو تا مونه او وروسته د سر حدی ملیشی د انقلاب د مدا فعینو جزوتا مو نه ، ځوان کوماندو‌ـ ګان او ښځانی دفاعی‌ډلـــی، د ګو نــــدی او دولتـــــــــی مشرانواو په مراسمو کی د حاضرو میلمنو په مخکی تیر شول اود درنا وی مرا تب یی پرځای کړل.

پدی وخت کی د هیواد د هوایی‌پوځ‌یوسیل هلیکوپترونه او جیټ الوتکی د استقلال د وا ټ له فضا نه تیری شوی ددرناوی مراتب یی پر ځای کړل. د هوایی پوځ یو سیل هلیکو پترو نو د انقلاب د لسمی کالیزی‌دمبارکی کارتونه خپاره کړل .

دثور انقلاب دلسمی کالیزی دنمانځلو په مراسمو کی په دولتی او ګوند ی مشرانو ،د اکینو دمو کراتیکو ګوندونو،د افغا نستان د خلکو د اسلا می ګوند ، د بزګرا نو د عد الت‌د ګوند د مشر تابه پر هیا تونو برسیره د وسله وا ل‌پـــوځ جنرالانو، لوړ رتبه افسرانو، دو لتی لوړ رتبه کار کوو نکو دملی رو غی‌جوړی د کمیسیو‌ـ نونو مسوولینو ، د ملی رو غی جوړی له تګلاری‌سره د یوځای شویو ډلو استازو ، راستا نه شو یو هیوادوالو ، د دوست هیوادد شو رو ی اتحاد، د آلمان‌دمو کراتیک جمهور یت، دپو لند د خلکو دجمهور یت، دویتنا م د سوسیا لیستـــی جمهور یت ، د چکو سلوا کیا دسوسیا لیستی جمهور یت ، دړو مانیا د‌سوسیا لستـــی جمهور یت ، د بلغا ریا د خلکو جمهور یت د مغلستا ن دخلکو جمهور یت ، د مجارت ستان د خلکوجمهور یت ،دیمن دمو کراتیك جمهور یت ،د عراق، اتریش ،نیکارا ګوا او هند دجمهور یت لوړ رتبـــه هیا تو نو چی د ثور انقلا ب دلسمی کا لیزی دلما نځلو په مراسمو کی د برخی اخیستو لپاره کابل ته را غلی دی پـه کابل‌کی‌ددوستو هیوادو لو ـ یوسفیرانو ، کور دیپلو ماتیکو هیا تو نو او پوځی اتشو اود کابل د ښار اود کابل ولایت دولسوا لیو په لس ګو نوزرو تنوخلکو بر خه در لوده .

د پریښ دمراسمو په پـــای کی په‌کابل کی‌د بهر نیوهیوادو سفیران لوژ ته لاړل دافغا ـ نستان د.خ.د.ګ، د مرکز ی کمیتی عمومی‌منشی او جمهور رئیس ملګری نجیب الله ته د ثور انقلاب دلسمی کا لیزی له‌امله د مبار کی مرا تـــب وړاند ی کړل.

دافغا نستان د جمهور یت رادیو تلویزیون د کابل ښار ورځپا ڼو او جریدو دځانګړ و پروګرا مو نو په خپرو لوسره دثور انقلاب په جشن کی خپل رول تر سره کړ.

دغـــــه راز د هیـــواد دولایتو نو په مرکزو نو کی‌هم دانقلاب دلسمی‌کالیزی ځانګړی اوپرتمین هر کلی وشو.



د ا.ج د وسله وال پــوځ دمنسو بانو اراده او ثبات د ثور انقلاب له بریاوو څخـــه ددفاع متضمن دی .

د بابه‌خان عکا سی



دهیواد نجونی او توریا لی ښځی تل چمتو دی د ثـــور انقلاب له بریاوو څخه دفاع وکړی .

د بابه‌خان عکا سی

## دمیلمستیا جوړول

دافغا نستان د خلك دمو ـ کراتیك ګوند دمر کزی‌کمیتی دعمومی منشی او جمهو ر رئیس ملګری نجیب الله لخوا پرو ن‌ما ښام دثور دپرتمین انقلاب دلسمی کا لیزی‌له‌امله دبهر نیو چارو دوزارت‌دمنلو په سالو ن‌کی یوه میلمستیا تر تیب شوی وه .

په دغه میلمستیا کـــ ، دا.خ.د.ګ دمر کزی کمیتی‌د سیاسی بیروغړی اوصدراعظم ملګری سلطا نعلی کشتمنـد دافغا نستان دخلك دمو کرا‌ـ تیـ ك‌ګوند دمر کزی کمیتـی د سیاسی بیرو او دارالانشاء غړ یو دوستو هیوادو لوړ‌ـ رتبه هیا تو نو چـــی دثور

(دوهم مخ)

## دوستانه کتنی

دافغا نستان دخلك دموکراتیك ګو ند دمرکزی کمیتی عمو مـی منشی او دافغا نستان جمهور رئیس ملګری نجیب‌الله پرون دآلمان دمتحده سو سیا لیست ګو ند دمرکزی کمیتی‌دسیا سی بیرو دعلی البدل غړی‌جلالتمآب ورنر والدی په مشری ددوست هیواد دآلمان ددمو کرا تیك جمهوریت هیا ت چی د ثـــور انقلاب دلسمی کالیزی پــــه مراسمو کی دبرخی اخیستنی په خاطر کابل ته را غلی دی دجمهوری ریاست په مقر د دلکشاپه ماڼی کی ومانه پـدی .

کتنه کی دافغانستان د خلك دمو کرا تیك ګو ند دمر کز ی کمیتی دسیاسی بیروعلی‌البدل غړی او منشی میر صا حـب کاروال هم حا ضر و .

دغه راز ملګری نجیب الله ددوست هیواد درومانیا دسو‌ـ سیا لیستی جمهوریت هیا ت چی دجلالتماب رادو کانستا ـ نتین په مشری دثور انقلاب دلسمی کالیزی په مرا سمو کی دګډون لپاره کابل ته را غلی دی د جمهوری ریاست په مقر دګلخا نی په ماڼی کی په‌داسی

(دوهم مخ)


دمبارکی دپیغامونو رسیدل (۲مخ)




د ثور د پر تمین انقـلاب د لسمی کا لیزی د نمانځلـــو‌دمرا سمو جلال او عظمت دخلکو په زوړنده ګډون سره‌په ډاګه شو .د شیرشاه ابوی عکاسی

# دسولي د دروازي بنسټ ایښودل

دافغانستان خلك دموكراتيك گوند دمركزي كميټي عمومي منشي او دافغانستان جمهور رئيس ملگري نجيب الله پرون له غرمي وروسته دثور انقلاب دلسمي كاليزي دلمانځلو له امله دسولي ددروازي د بنسټ ډبره دهوايي ډگر دواټ په تگلوري كې كيښودله.

په هغو مراسمو كې چې له همدې امله جوړ شوي وو دا.خ.د.گ دمركزي كميټي د سياسي بيرو غړي او صدراعظم ملگري سلطان علي كشتمند د دا.خ.د.گ دمركزي كميټي دسياسي بيرو غړي او منشي ملگري صالح محمد زيري او د كابل ښاردگوندي كميټي منشي ملگري داود رزميار برخه درلود.

دمراسمو په پيل كې كابل ښاروال آدينه سنگين دلسدې ويناپه ترڅ كې دسولي ددروازي د طرحې ، ډيزاين جوړولو په باب چې د ثور دپرتمين انقلاب دلسمي كاليزي په وياړ دكابل ښار داستازو دجرگې داجرائيه كميټي له خوا جوړېږي معلومات وركړل.

وروسته دكلام الله مجيد څو آيتونه ولوستل شول او دا.خ.د.گ دمركزي كميټي عمومي منشي او دافغانستان جمهور رئيس ملگري نجيب الله او دا.خ.د.گ دمركزي كميټي دسياسي بيرو غړي او صدراعظم ملگري سلطانعلي كشتمند د سولي ددروازي د بنسټ ډبره كيښوده.

# د مباركي د پيغامونو رارسيدل

د ثور انقلاب د لسمي كاليزي له امله د ا.خ.د.گ دمركزي كميټي د عمومي منشي او دافغانستان دجمهور رئيس ملگري نجيب الله له دا.خ.د.گ دمركزي كميټي د سياسي بيرو د غړي او د افغانستان دجمهوريت د صدراعظم ملگري سلطانعلي كشتمند په نامه ډېو لندن متحده كارگري گوند دمركزي كميټي دلومړي منشي او ډبو لند دخلكو د جمهوريت ددولتي شوراد رئيس ملگري ويچيخ ياروزلسكي له خوا د مباركي پيغام كابل ته را رسيدلي دي.

په پيغام كې دغه له كومې مباركيو د څرگندولو په ترڅ كې په هيواد كې دسولي دتامين په خاطر دافغانستان دجمهوريت د سوله غوښتونكو هلو ځلو ملاتړ شوى او هيله څرگنده شوې چې د ژنيو موافقې په افغانستان كې دسولي دتامين له امله زمينه برابره ړي.

دغه راز له همدې امله د افغانستان دخلك دموكراتيك گوند دمركزي كميټي دعمومي منشي او دافغانستان دجمهور رئيس ملگري نجيب الله په نامه د ثور انقلاب دلسمي كاليزي له امله دكيوبا دكمونيست گوند دمركزي كميټي دلومړي منشي او دكيوبا د جمهوريت ددولت او دوزيرانو دشورا دږئيس ملگري فيدل كاسترو لخوا د مباركي پيغام كابل ته را رسيدلي دي.

په پيغام كې دمبار كبو د څرگندولو په ترڅ كې د هغو لاسته راوړنو او مبارزو چې دافغانستان خلكو په هيواد كې ددوامداري سولي او امنيت دتامين په خاطر پيل كړيدي ستاينه شوې او داډ څرگند شوي چې دافغانستان د جمهوريت او كيوبا تر منځ دوستانه اړيكي او ګټوري همكاري به ورځ په ورځ د سولي او د دواړو هيوادو دخلكو په گټه زياته پياوړي تيا ومومي.

دغه راز له همدې امله مباركي پيغام د هند دجمهوريت دجمهور رئيس جلالتماب

*

دجمهوري رياست دفتر خبر وركړ چې دثور انقلاب د لسمي كاليزي له امله د مباركي د پيغامونو درارسيدلو په لړ كې هم ورځ دروشمير دولتي اداري ، تولنيز وسازمانونو او گوندي كميټو لخوا د افغانستان د خلك دموكراتيك گوند دمركزي كميټي دعمومي منشي او د افغانستان دجمهور رئيس ملگري نجيب الله په نامه دمباركي پيغامونه رارسيدلي دي. دوړمه ورځي د مباركي پيغامونه د سپكو صنايعو او خوراكي موادو دوزارت، د كرنې او ځمكو داصلاحاتو د كلكتيفونو ، د هزاره ملت دمركزي شورا ، لويي څارنوالي ، د ښځو د سراسري شورا ، دكابل ولايت دښځو د شورا ، دكابل ولايت دولايتي گوند ي كميټي او دكابل ولايت دخلكو داستازو د شورا داجرائيه كميټي ، دپكتيا ولايت د گوند ي ولايتي كميټي دوردگو ولايت ددولتي امنيت د رياست د سياسي آمريت ، دارزگان دولايتي گوند ي كميټي ،دكابل ولايت دبزگرانو د كوپراتيفونو د اتحاديي او د افغانستان د جمهوريت د كسبگرو داتحاديي دمركزي شورا لخوا را رسيدلي دي.

باختر

# دوستانه كتني

**دلومړي مخ پاتي**

حال كې چې دافغانستان بانك لوي رئيس بصير رنجبر هم حاضر وو ، مانه.

په خبر كې زياته شوي چې د ا.خ.د.گ دمركزي كميټي عمومي منشي او د ا.ج جمهور رئيس ملگري نجيب الله په داسې حال كې چې دلوړو تحصيلاتو وزير محترم سرا بي هم حاضر و ددوست هيواد دعراق د جمهوريت هيات و مانه د عراق هيات چې د ثور انقلاب د لسمي كاليزي دلمانځني په مراسمو كې دبرخي اخيستني لپاره كابل ته راغلي دي مشري يې دهغه هيواد دلوړو تحصيلاتو وزير جلالتمآب دوكتور الشاوي په غاړه لري.

ملگري نجيب الله پرون له غرمي وروسته په څلورو بجو په داسي حال كې چې دافغانستان دخلك دموكراتيك گوند دمركزي كميټي دسياسي بيرو غړي او منشي ملگري نجم الدين كاوياني هم حاضر و دهند د پارلمان دغړي او دهند ـ افغانستان ددوستي دټولني درئيس. ار.ال بهاټيا په مشري ددوست هيواد هند د جمهوريت هيات چې دثور انقلاب دلسمي كاليزي دنمانځلو په مراسمو كې دبرخي اخيستني په مقصد كابل ته را غلي دي دافغانستان د جمهوري رياست په مقر دگلخانې په ماڼۍ كې دكتني لپاره ومانه.

پدې كتنه كې جلالتماب بهاټيا د هند هيواد ته دملگري نجيب الله د رسمي سفر په باب د هند دصدراعظم جلالتماب راجيو گاندي بلن ليك وړاندې كړ چې په كور وداني سره يې ومانه ، ددغه سفر نيټه به له ديپلوماټيكي لارې نه وټاكل شي.

دغه راز ملگري نجيب الله ددوست هيواد ديمن د خلكو ددموكراتيك جمهوريت هيات چې ديمن دسوسيالسټ گوند دمركزي كميټي دغړي او ديمن دخلكو دجمهوريت دخلكو دڅارني او كنترول رئيس جلالتماب مهدي عبدالله سعيد په مشري دثور انقلاب دلسمي كاليزي دنمانځلو په مراسمو كې دبرخي اخيستني په خاطر كابل ته راغلي دي د كتني لپاره ومانه پدې كتنه كې اكا د ميسين ملگري د ستكيير پنجشيري هم حاضر و ديو بل خبر له مخې ملگري نجيب الله دشوروي اتحاد د جليا بنسكي دايالت داجرائيه كميټي مرستيال جلالتماب كانسنا نتين ويتالي گريگو ويچ او ملگري هيات يې چې دثور انقلاب د لسمي كاليزي دنمانځلو په مراسمو كې دبرخي اخيستني لپاره كابل ته راغلي دي ومانه.

پدې كتنه كې د مستقيمو همكاريو په چارو كې ددولت وزير سيد اكرام پيگير هم حاضر و.

# د ميلمستيا جوړول

**(دلومړي مخ پاتي)**

انقلاب دلسمي كاليزي په مراسمو كې دبرخي اخيستني په مقصد كابل ته راغلي دي دوزيرانو شورا غړيو د افغانستان د جمهوريت دوسله ـ وال پوځ جنرالانو او لوړرتبه افسرانو ،دافغانستان دجمهوريت داردوا تلانو، دافغانستان د جمهوريت دكار اتلانو، گوندي او دولتي لوړرتبه ما مورينو، ددوستو هيوادو سفيرانو او شارژ دافيرانو برخه اخيستي وه.

# له ميلمنو سره كتنه

دا.خ.د.گ دمركزي كميټي دسياسي بيرو غړي او صدراعظم ملگري سلطانعلي كشتمند پرون دشوروي دسوسياليستي فدراتيف د جمهوريت دعالي شورا درئيسه هيات د صدر د مرستيال ولاديمير پاولو ويچ په مشري د شوروي سوسياليستي جمهوريتو نو د اتحاد له هيات سره په داسي حال كې چې دښوونې او روزنې وزير عبدا لصمد قيومي او د شوروي سوسياليستي جمهوريتو نو اتحاد سفير او فوق العاده استازى ديگور ييچيف نيكولاي گريگور يو يچ هم حاضر وو وكتل.

ملگري سلطانعلي كشتمند پرون دمجارستان د كارگري سوسيالسټ گوند دمركزي كميټي دغړي او ددفاع په چارو كې ددولت دوزير جنرال ليويش موراكس په مشري دمجارستان د خلكو دجمهوريت له هيات سره دوزيرانو شورا په مقر كې وكتل.

ددي كتني په وخت كې دافغانستان د خلك دموكراتيك گوند دمركزي كميټي دوسله وال پوځ دښا نگې مسوول لوی درستيز جنرال عبدالحق علومي ، دمستقيمو همكاريو په چارو كې ددولت وزير سيد اكرام پيگير او دافغانستان په جمهوريت كې دمجارستان دجمهوريت سفير هم حاضر وو.

دغه راز ملگري سلطانعلي كشتمند پرون دوزيرانو شورا په مقر كې په كابل كې دنيكاراگوا دنا استو گن سفير او فوق العاده استازى ار نيستوخوشي كاستيلو مار كنيس په مشري د نيكاراگوا د جمهوريت له هيات سره وكتل.

په دې كتنه كې د ا.ج دملي جبهې مرستيال حبيب منگل هم حاضر و.

ددغو كتنو په ترڅ كې چې په دوستانه او صميمانه فضا كې وشوې د افغانستان د جمهوريت صدراعظم د ثور انقلاب دلاسته راوړنو او دغو هيوادو تر منځ ددوستانه اړيكو دپراختيا په ارتباط خبري وكړي او ددواړو خواوو د علاقې وړ پولو مسئلو باندې وغږيدل.

ميلمه هياتونه د ثور انقلاب دلسمي كاليزي دنمانځني په مراسمو كې دگډون لپاره كابل ته راغلي دي.

# دفرمان نافذيدل

## دا.ج دوسله وال پوځ دمنسوبانو او دعسكري خدمت ته د برابرو اتباعو دجزايي دعوا له تعقيب څخه دا نصراف په باب

دملي روغي جوړي دانسانـ دوستانه تگلارې او د ثور انقلاب دلسمي كاليزي په وياړ دافغانستان دجمهوريت د اساسي قانون د ۷۵ مادي داتمي فقري دحكم له مخي دافغانستان دجمهوريت دوسله ـ وال پوځ دمنسوبينو او د عسكري خدمت دمساعدو اتباعو له جزايي تعقيب څخه په لاندې ډول صرف نظر كيږي.

**لومړۍ ماده :**

دوسله وال پوځ هغه شمير منسوبينو چې مخكې يې خپلي قطعي او جزو تامونه خوشي كړي او له عسكري خدمت نه تښتيدلي دي ، دغه راز هغه اشخاص چې دعسكري خدمت تر جلب لاندې وو او د عسكري خدمت له اجرا څخه يې سر غړولي كه چيرې ددغه فرمانډ نافذيدو له نيټې څخه تر څلورو مياشتو پورې پخپله خوښه خپلو قطعو او جزو تامونو او يا ددولتي قدرت او اداري ارگانونو ته دعسكري خدمت دسرته رسولو لپاره حاضر شي له جزا څخه معاف گڼل كيږي.

**دويمه ماده :**

دهغو جزايي دوسيو ددعوا له تعقيب څخه چې ددغه فرمان له نافذيدو مخكې په دې ماده كې دشاملو اشخاصو او نيول شويو اشخاصو تحريك شوي او د هغو په باب حكم قطعيت نه وي موندلي صرف نظروشي او مربوطي دوسيي دي وساتل شي.

**دريمه ماده :**

ددغه فرمان دلومړي او دويمي مادي مندرج اشخاص دې دخدمت ټاكلي موده او ياد خپل خدمت پاتي موده دقانون په اساس تيره كړي او دشاقه خدمت له اجرا څخه دي معاف شي.

**څلورمه ماده:**

هغه كسان چې له عسكري خدمت څخه پر تعلل سربيره د نورو جرمونو مرتكب شوي وي دهغو جرمونه دي دهيواد د نافذه قوانينو دحكمونو پر اساس وڅيړل شي.

**پنځمه ماده :**

ددغه فرمان تطبيق دكشف، تحقيق ،څارنوالي ا و هغو محكمو دارگانونو دقطعو او جزو تامونو دقوماندانانو په غاړه دي چې مربوطي دوسيي دهغوى تر څيړنې لاندې دي.

**شپږمه ماده :**

ددغه فرمان پر دقيق تطبيق باندې څارنه دافغانستان د جمهوريت دلوي څارنوالي او په مربوطو برخو كې دوسلهـ وال پوځ دڅارنوالي او انقلابي اختصاصي څارنوالي په غاړه دي.

**اوومه ماده:**

دغه فرمان له ۱۳۶۷ كال د ثور له ۷ نيټې څخه نافذ او په رسمي جريده كې دي خپور شي.

**نجيب الله**
**دافغانستان جمهور رئيس**

# دانقلاب دلس كلني جشن

## دانقلاب دلسمي كاليزي دنمانځني په مراسمو كې دا.ج ددفاع وزير ملگري محمد رفيع وينا

**گرانو هيواد والو !**
**ټوره ورو سر تيرو او افسرانو او ښاغلو بهرنيو ميلمنو !**

نن د ثور انقلاب لسمه كاليزه نمانځو. په تير كال كې مو ستري آزموينې تيري كړي په دغه موده كې مو ډيرهغه لاره وو هله چې له لسگونو كلونو سره برابره ده ، ملي مصالحې اقتصاد جوړښو په ټولنيز دگر كې ستر گامونه واخيستل شول ، دموكراتيك دولت په پراخ سياسي سيستم سره جوړ شو يدي د غو ټو لو له دې كار سره مرسته وكړه چې دد غو كلونو په ترڅ كې انځيز من وگړ نی دا سې وسله وال پو ځ جوړ شي چې په مستقلانه توگه زموږ دهيواد دواكمني ځمكني بشپړ تيا او آزادي دفاع هوسلري.

په نړيوال دگر كې د افغانستان اعتبار لوړ شويدي.

د ملي روغې جوړې سياست چې دانقلاب درغنده اصولو د بشپړ تحقق امكان برابرو ي د ثور انقلاب په ستر ارزښت بد ل شويدى په تيره بيا په تيرو (۱۵) مياشتو كې د ملي روغې جوړې تگلاره دافغانستان دخلك دموكراتيك گوند سرا سري كنفرانس او دافغانستان دخلكو تاريخي لويه جرگه جوړه دهيواد اساسي قانون تصويب

هيواد جمهور رئيس و تاكل شو اودافغانستان دجمهوريت دملي شورا لپاره انتخابات په بري سره سر ته رسيد لي دي.

زموږ دمهاجرو هيوادوالو څه دپاسه ۱۳۰ زره تنه هيواد ته را ستانه شو ل اودوسله وال اپوزيسيون څه دپاسه ۴۰ زره تنه له خپل وگړ نې دولت سره يو ځاى شو ل.

دافغانستان دجمهوريت اودپاكستان داسلامي جمهوريت تر منځ د ژنيو دموافقو لاس ليك چې زموږ خلك د سو لي دتامين په خاطر په بې صبري سره هغو ته سترگې په لاره وو د ملي روغې جوړې يوه بله بريا گڼله كيږي.

بې له شكه د ژنيو د موافقو لاسليك زموږ د هيواد په تاريخ كې غوره ځاى نيو لي او دثور انقلاب دلس كلني دجشن پر تم او برم زياتوي.

زموږ خلك دغه ستره تاريخي بريا دافغانستان دجمهوريت او شوروي ي اتحاد دسوله غوښتو نكو افغانانو زيږنده بولي، ددغو سندونو له مخې ددواړو هيوادو په كور نيو چارو كې لاس نه وهل او نه مداخله ، ملي واكمني ، سياسي خپلواكي ته درناوى

داجيرانو نه سمبا لول ،نه تمويلول او نه گوماړل د مهاجرينو د خپلي خوښي راستنيدل تضمين شويدي.

اجازه را كړى چې دافغانستان دخلكو دد غه نيكمرغه او ستر جشن په ورځ دافغانستان دجمهوريت دو سله ـ وال پو ځ دمنسوبانو په نماينده گي مبا رجوړونو اوخو ينډو ته خطاب وكړو چې د هيواد وسله وال پوځ به د هغوى د ژوندانه د شرايطو د ښه والي اودا منيت د تامين لپاره خپل ټول امكانات په كاروا چوي .پوځيان دهيواد له جمهور رئيس ملگري نجيب الله،دافغانستان دخلك دموكراتيك گوند له مركزي كميټي او له وزيرانو شورا نه وسله و الپو ځ ته د هغوي دهميشني پا ملرنې له امله چې د هغوى په نتيجه كې په سياسي ژوند كې دهغوى رول لوړ شويدى منندوي، هغوى زموږ د هيواد دخلكو د گټو و كرنې

وا كمنې په ډاډ منو مدافعينو بد ليږي ، دافغانستان د جمهوريت د ملي شورا او سنا په انتخاباتو كې دلومړي ځل لپا ره دوسله وال پو ځ د منسوبينو فعا ل گډون ددغه كار ښكارندوى دى.

زموږ د وسله وا لپو ځ د ژنيو له موا فقو سره سم د هيواد دملي واكمنى ځمكنى بشپړ تيا او استقلال او د انقلاب دار زښتو نو دخپلواكې سا تنې لپا ره تيا رى نيسي زموږ پو ځي دكتور ين دفا عي ځانگړ تيا لري ، مو ږ هيڅكله د هيڅ هيواد پر ضد يرغليز پو ځي عمليا ت نه كوو خودا چې په خپله وسله وا ل تيري راباند ې ږ شي . برسيره پردې موږ له بهر نه د تير ي د شنډو لو په خاطر د خپل وسله وا لپو ځ تيا رى تسل لوړوو .موږ نه پټوو چې دسولې اوملي توافق دښمنان لاتراوسه په دې فكر كې دي چې د و سلې په زور اويا د جگړې ،وروروژ نې او وينو تويولو په دوام سره خپلو له غر ض نه ډكو هد فونو ته ورسيږي. مو ږ د دې اصل په پيروي دوسلهـ وا ل پو ځ په بشپړ و لو او سمبا لو لو او د هغو كسا نود بريدو نود شنډولو او له منځه وړلو په خاطر چې د رو غې جو ړې رښتيني آواز نه منيږد هغه د محاربو ي او سيا سي احضارا تو په لو ړ تيا كې له بل هر وخت نه زياتي هلي ځلي كوو.زمو ږ خلك له جگړ ې ستړې شويد ي او يوا ځې سو له غوا ړي دو سله وا ل پو ځ منسوبين خپلې دندې په لو ړ احسا س او د خلكو په وړاند ې په مسوو ليت سره سر ته رسوي .

گرا نو هيوادوا لو !

دافغانستا ن د جمهوريت وسله وال پوځ دمستقلانه فعاليتونو د سر ته رسو لو لپاره په دا سې شرا يطو كې تيارى نيسي چې د ثور په ۲۱ نيټه به مو ږ خپل سو له دوست هيواد شوروي اتحاد ته دانترنا سيونا ليستو پو ځيا نو ستنيدنه بدرگه كړو .موږ هم په دې وياړلي ورځ خپلې او د وسله وا ل پو ځ د منسو بينو نيكي هيلې ، شوروي انترنا سيونا ليستو ورو نو ته چې په ډير و سختو شرايطو كې يې زموږ مر ستې ته راداننگلي څرگند ې كړو.

موږ په ټينگو گا مو نو په پوره ايمان په حتمي بريا ليتوب په ټينگه اراده ، په اوسپنيز عزم او په يووالي اويو موټي تو بسره افغانا نو د هيواد جنگيا ليو سر تيرو په څير د انقلاب دبرياوو او د روغې جو ړې دوړو ستې برياليتو ب په خا طر مخ په وړاند ې ځو.

دافغانستا ن اردو دسو لې او هستوني اردو ده .

نيكمرغه دې وي د ثور انقلاب لسمه كاليزه

ژوندي دې وي دافغانستان سوله دوست خلك !

ژوندي دې وي ملي روغه جوړه ، د ثور انقلاب دوام .

خلك او اردو سره يو دي .

سرحدي مليشا دهيواد دسرحدونو څخه ددفاع په كاركې ارزښتناكه رول لوبوي.

دشيرشاه عكاسي

د افغانستان جمهوريت اردو په عصري وسايطو او تجهيزاتو سمبال ده .

# د انقلاب د لس کلنۍ جشن د سولې او مصالحې په سوغات سره ونیسو!

د ۱۳۶۶ کال د میزان په ۲۶ نیټه د کابل پولی تخنیک انستیتوت په تالار کې د ا.خ.د.ګ د دویم سراسري کنفرانس د پیل یوه ننداره .

## د انقلاب جشن- عملي اقدامونه

د افغانستان خلک نن د ثور انقلاب لسمه کالیزه چې د ا.خ.د. ګ تر مشرۍ لاندې بري ته ورسیده په ځانګړو هیلو او پر تمینو مراسمو لمانځي .

د ثور انقلاب د لسمې کالیزې لمانځنه په داسې شرایطو کې کیږي چې د افغانستان د خلک دموکراتیک ګوند تاریخي نوښت یعنې د ملي مصالحې تګلاره میوې ته رسیدلې ده. د ثور انقلاب د لسمې کالیزې په را رسیدلو سره د افغانستان د شاوخوا حالاتو د اوارۍ له لارې وروستني خنډونه لرې شوي او د ژنیو خبرې د ا.ج دولت او شوروي اتحاد د سترو او جوړوونکو اقداماتو په نتیجه د غیر مستقیمو شپږ کلنو خبرو څخه وروسته وروستي شوي .

د ا.خ.د. ګ او د ا. ج دولت د ملي مصالحې اعلام شوې تګلاره له عملي تصمیمونو او اقداماتو، او زموږ د انقلاب په روان پړاو کې له جدي، اصولي او هیواد پالو پراتیک سره یو ځای کړ . چې د نمونې په توګه د لسونو اقدامونو فرمان او مصوبې څخه لاندېني عملي او مشخص اقدامونه او تدبیرونه یې اډولي شو :

– د ملي مصالحې د تګلارې د اعلام له امله د عمومي بخښنې فرمان
– د بندیانو د خوشې کولو فرمان .
– د عسکرۍ د عمومي مکلفیت د قانون انفاذ
– د راستنیدونکو د مالونو د بیرته ورکولو په باب فرمان
– د افغانستان په دموکراتیک جمهوریت کې د ځمکې او اوبو د اړیکو د تنظیم د اساسي پرنسیپونو په باب مصوبه .
– د سیاسي ګوندونو د قانون انفاذ .
– د مطبوعاتو د قانون تصویب او انفاذ او له ټولو غوره د ا.ج د اساسي قانون طرحه د خلکو د ملي وثیقې په حیث ده چې لږ تر لږه پنځه میاشتې نظر غوښتنې ته وړاندې شوه او له دوه میلیونو څخه زیاتو خلکو یې په باره کې رایې ورکړې او د افغانستان د خلکو په عنعنوي لویه جرګه کې له دوو ورځو خبرو او مشورو وروسته تصویب شوه، نوموړې لویې جرګې د ا.خ.د. ګ د مرکزي کمیټې عمومي منشي ملګري نجیب الله د ثور له انقلاب وروسته د افغانستان د لومړني جمهور رئیس په توګه وټاکه او په دې توګه یې ثابته کړه چې د افغانستان خلک په ا. خ. د. ګ ستر باور لري، اوس ملي مصالحه له بلنې، شعار او هیلې څخه زموږ د هیواد د تاریخ په نوې پاڼه د سولې په فلسفې، د دولت په سیاست او د افغانستان د اکثریت خلکو په کړنلاره واوښته او له هغې څخه تر لاسه شوې بریاوې چې د هیواد په مقیاس او څه په سیمه او نړۍ کې ټولو ته د پوهیدو او درک وړ ده .

د ملي روغې جوړې د سیاست د ربښتیا ینې په نتیجه کې اوس یې له اعلام څخه یو کال او څلور میاشتې تیرېږي زموږ څه د پاسه ۱۲۱ زره هیوادوال بیرته هیواد ته را ستانه شوي او په خپل عادي ژوند یې پیل کړی دی په داسې حال کې چې مخکې کلونه پنځه زره تنه هیواد ته را تلل، ۳۲۰۰ کلي په سوله ییزه توګه آزاد شول دوه ولایتونه، ۱۶۵۰ ولسوالۍ او علاقه‌دارۍ، ۱۱۵۰ کلي چې په هغو کې نږدې دري میلیونه خلکو ژوند کاوه د سولې د سیمو په نامه اعلام شوي څه د پاسه څلور زره وسله والو مخالفو له مقاومت څخه لاس اخیستی او په عادي ژوند یې پیل کړی چې له دوی سره یو ځای ۱۵۰ زره تنو خپل سوله ییز ژوند پیل کړ. په داسې حال کې د نا اعلام شوې جګړې په کلونو کې هغو مخالفینو چې وسلې یې پر ځمکه ایښې وې له ۱۲ زرو تنو نه زیات نه وو، بر سیره پر دې ۱۲ زره تنه له جیل څخه خوشې شوي او پخوانیو شپږ زرو مخالفینو چې له وسله والو فعالیتونو څخه یې لاس اخیستی د ملي روغې جوړې د کمیسیونونو په ترکیب کې شامل شوي ۱۴۹ تنه د ملي جبهې په سیمه ییزو شوراګانو کې، د پخوانیو مخالفو وسله والو ډلو ۳۶۱ مشران په بیلا بیله سطحه د اجرائیوي کمیټو د رئیسانو او منشیانو په توګه مقرر شوي دي .

په هیواد کې د ګړنیز واکمنۍ د ائتلافي حکومت د جوړولو له پاره دولت د رهبرۍ ۲۸ څوکۍ له ګډه د صدارت مقام یې د ائتلافي حکومت د جوړولو په مقصد اپوزیسیون ته په مشخص، رسمي او علني ډول پیشنهاد کړ، دغه راز مخکنیو رژیمونو وزیرانو ته بلنه ورکړه شوه چې د وطن د جوړولو له امله خپل رسالت سرته ورسوي. همدا اوس د وزارتونو په سطحه د دغو همکاریو بیلګې لیدل کیږي.

د ا.خ.د. ګ او ا.ج دولت د راستنو شوو د چارو او راستنو شوو ته د سیمې د پاملرنې د سازمانولو په مقصد راستنو شوو چارو اداره یې د وزارت په سطحه جوړه کړه چې همدا اوس د راستنو شوو چارو اداري رئیس د ا.ج د صدراعظم د مرستیال په توګه هم دنده سر ته رسوي .

د روغې جوړې په یو کال کې د راستنو شوو د خوراک او استوګنې ځای او لیږدولو له پاره د راستنو شوو د اداري د دولتي کمیټې له لارې ۱۸۷۲۰۰۰۰ افغانۍ د راستنو شوو د نورو اړتیاوو لرې کولو له امله ۳.۹۳۷.۲۷۷۱ افغانۍ بیلې شوې وې. بر سیره پر دې له راستنو شوو سره د مرستې له پاره صندوق جوړ او په یو کال کې زموږ هیوادوالو څه د پاسه (۹۰) میلیونه افغانۍ له دغه صندوق سره مرسته کړې ده د راستنو شوو د پاملرنې په برخه کې دوست او ورور هیواد شوروي اتحاد په میلیاردونو افغانۍ مرسته کړې ده .

د ا.ج دولت راستنو شوو ته د ښې پاملرنې له امله اعلام وکړ چې راستنو شوو له پاره ټول لازم امکانات په پام کې نیول شوي دي او ټول راستانه شوي د نورو هیوادوالو په څیر له ټولو حقوقو څخه برخمن دي، په یو کال کې په سوونو راستانه شوي د ځمکو او کورونو خښتنان شوي د راستنو شوو څه د پاسه ۱۳۰۰ زامن په ښوونځیو او لوړو موسسو کې جذب شوي او د هغو په سوونو تنه خپلو مخکنیو دندو کې شامل شوي دي .

د ملي روغې جوړې د تګلارې په نتیجه کې د هیواد سیاسي اقتصادي، ټولنیز، فرهنګي او پوځي ژوند ټولې برخې په خوځنده توګه را غلې او زموږ د خلکو سترې بریاوې په برخه شوې دي . لکه څنګه چې په دغه وده کې د ا.ج جبهه د سیاسي- ټولنیز باوري ستر سازمان په توګه منځته راغله او یوازې په یو کال کې ۳۶۶۷۷ تنه په انفرادي ډول او څه د پاسه ۸۰ زره تنه په ډله ییز ډول د ا.ج له لیکو سره یو ځای شوي دي. همدا اوس د ا.ج په جبهه کې ۸۰۰ زره تنه ډله ییز غړي او ۱۴۴۲۸۴ تنه انفرادي غړي، غړیتوب یې د ملي روغې جوړې د سیاست په رڼا کې

په هیواد کې ټولو ګوندونو او سازمانونو ته د کار د سره ګډون لارې چارې برابرې شوې چې په نتیجه کې پنځه سیاسي ګوندونه او سازمانونه په عملي ډول جوړ او په ښکاره یې په فعالیت پیل وکړ .

د ملي روغې جوړې په موده کې په ځانګړي ډول په خصوصي سکتور کې ۷۱ صنعتي موسسې نوې جوړې شوې او په کار یې پیل وکړ، د افغان شوروي خصوصي او ګډې ۱۴۸ پروژې په ۳۵ میلیارډو لومړنۍ پانګې سره د ګټې اخیستو له پاره چمتو شوې دي د افغانستان د ولایتونو د شوروي اتحاد له ۱۲ جمهوریتونو او ۱۸ ایالتونو سره د مستقیمې همکارۍ اړیکې ټینګې شوې دي. د شوروي اتحاد محدودي قطعې د هیواد له ۱۳ ولایتونو څخه وتلي او د ولایتونو امنیت د ا.ج د وسله وال پوځ د جزوتامونو په واسطه تامین شو .

> **د ملي روغې جوړې سیاست چې د ا.خ.د. ګ د پوهې او پوخوالي نماینده ګي کوي، په هیواد کې یې د سولې تامینولو، سمسورتیا او ترقۍ له پاره سترې پایلې منځ ته راوړي**

باید زیاته کړو چې د ملي روغې جوړې د اعلام په یو کال کې ۱۰۶ ښوونځي نوي جوړ شول د لیک لوستې ۲۶۶۹۵ کورسونه نوي جوړ شول. تر ټولو مهمه داده چې د ملي روغې جوړې د سیاست په نتیجه کې د ا.ج. ملي شورا یعنې د هیواد تقنیني لوړ اورګان ته انتخابات وشول څه د پاسه ۱۵۴۷۰۰۰ تنو رایې ورکوونکو پکې ګډون وکړ چې دغه شمیر زموږ د هیواد په تاریخ کې بې ساری دی په نتیجه کې د افغانستان د خلکو وګړنیز پارلمان جوړیږي.

د ملي روغې جوړې د تګلارې مهمه، ستره او تاریخي بریا د ژنیو د خبرو بریالی پای دی چې د شپږو کالو راهیسې یې په ژنیو کې دوام درلود. د ژنیو د خبرو د بریالي کیدو له پاره د ا.خ.د.ګ د مرکزي کمیټې عمومي منشي او د افغانستان جمهور رئیس ملګري نجیب الله او د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند د مرکزي کمیټې عمومي منشي ملګري میخائیل سرګیویچ ګرباچف د دلوي د میاشتې اعلامیې، د افغانستان د جمهوري دولت او د شوروي اتحاد حکومت د حوت د میاشتې اعلامیې او په تاشکند کې له ملګري میخائیل سرګیویچ ګرباچف سره د ملګري نجیب الله کتنه او د افغان- شوروي ګډه اعلامیه د دې سبب شوې چې د ژنیو خبرې وروستي نتیجې ته ورسیږي او د حمل په ۲۶ نیټه د افغانستان دولت په ۱۴ر۴۰ د افغانستان شوروي اتحاد، پاکستان او امریکا د هیوادونو په ګډون وروستۍ موافقتنامې لاسلیک شوې .

دغه موافقتنامې چې د ا.خ.د.ګ او ا.ج دولت د غوره شوې لارې ستره میوه ده د افغان په خاوره کې د سولې د تامین سمسورتیا او ترقۍ په مقصد زموږ د هیواد په تاریخ کې نوې پاڼه پرانیسته .

اوس چې د هیواد د انقلاب لس کلنۍ چې د ا.خ.د.ګ په مشرتابه بریالی شوې لمانځو ډیر ښه پوهیږو چې د ا.خ.د.ګ د افغانستان خلکو د ترقۍ سمسورتیا او نیکمرغۍ له پاره مبارزه کړې او مبارزه کوي .

د ملي روغې جوړې سیاست چې د ټولو له پاره اصولي او د پوهیدو وړ تګلاره ده او د هیواد پر لوړو ګټو ولاړه ده زموږ د ګوند او د ا.خ.د.ګ، د سیاسي پوهې د پوخوالي نماینده ګي کوي په یو کال او څلور میاشتو کې لاسته را غلې نتیجې د دغه مقصد ښه شاهد دی .

د ملي روغې جوړې د تګلارې ډیر زر ربښتیا ینه زموږ له هر هیوادوال څخه نوښتګر او صادقانه هڅې غواړي چې تر څو دغه لاره چې دغه تګلاره چې د هر هیوادوال غوښتنه ده زموږ د خلکو زړونو ته ورسوي تر څو زموږ خلکو یې ډالۍ په خپل هیواد ورځني ژوند کې لازیاته ورینې په دې باب د ا.خ.د.ګ غړي په هیواد کې د سیاسي ستر ځواک په توګه اساسي او غوره رول په غاړه لري .

باید روان کال، د سولې، ترقۍ، غوړیدنې او نیکمرغۍ کال وي !

باید ټول افغانان په خپل ګډ کور کې خپل ورور ګلویز ژوند ته سازمان ورکړي. په داسې هیلې او باور سره د ثور انقلاب لسمه کالیزه تاسې ته په نیکمرغۍ سره یادوم .

اشرف شهګار

## وسله وال پوځ د وطن او انقلاب د دفاع کلک ډال

له نن ورځې څخه لس کاله د مخه د ا.خ.د. ګ په رهبرۍ او خلکو د بالقوه او بالفعلي ارادې پر اساس وسله وال پوځونو، د ثور د ملي- دموکراتیک انقلاب د پیل زموږ د هیواد په تاریخ کې د یوې سترې پیښې په توګه بري ته ورسیده .

تیر لس کلونه په واقعیت کې د انقلابي او وطنپال کار په پراتیک کې زموږ د ګوند د ا.خ.د. ګ د انقلابي ارزښت کلونه وو. اوس چې د ثور انقلاب د لس کلن توب جشن جوړوو، په غرور او سرلوړۍ سره باید ووایو چې د افغانستان خلکو د هیواد له وسله وال پوځ سره یو ځای، د وطن او انقلاب په دفاع کې سترې حماسې په تاریخ کې ثبت کړې، چې را تلونکو نسلونو ته به د وطنپالنې ستره مدرسه وي. زموږ د خلکو د انقلابي کار او مبارزې په دوام کې، ډیر وخت نه و تیر شوی چې د امپریالیزم لمڅوانو اعلام شوې جګړه د ثور انقلاب او زموږ د خلکو پر خلاف چې تازه یې نوی ژوند پیل کړی وو، پیل شوه .

د دغې جګړې اړخونه په پرله پسې ډول پراخه شول او د امپریالیزم د لاسپوڅو د وړاندې نکارو عملونو له کبله چې په پراخه طیف او کادر کې یې عمل کاوه، زموږ پر وطن او خلکو درانه تاوانونه تحمیل شول اوس چې د ثور انقلاب لس کلنتوب په پرتمینه توګه په برم سره لمانځو ضروري ده یادونه یې وشي چې زموږ د خلکو لاس ته راوړنې به په هغه صورت کې چې جګړه پرې نه وای تپل شوې، له هغه څخه چې اوس دي ډیرې زیاتې او سترې وای .

هغه څه چې باید یو ځل بیا پرې ټینګار وکړو دا دي چې په دې تباه کوونکې جګړه کې د هیواد خلکو او وسله وال پوځ د جګړه ییزې سرښندنې او زړورتیا ډیرې غوره بیلګې وښودې او د جګړې د اړخونو د زیاتیدونکو پراختیاو سره سره یې د وطن او انقلاب کلکه او په اتلولۍ سره دفاع وکړه چې د ټولو وطنپالو افغانانو د ویاړ سبب دی .

کله چې د ا.ج پر خاوره له بهر څخه د دغې تیری کوونکې جګړې دوام زیات شو انقلاب خپلواکي، د ځمکنۍ بشپړتیا او د افغانستان ملي حاکمیت له کلک خطر سره مخامخ شو د ا.ج د قانوني دولت په غوښتنه او تقاضا د شوروي انترناسیونالیستي پوځیانو د هغه د محدودو قطعو په وجود کې د تیري د له منځه وړلو او دفع کولو په ځای طرز زموږ په جنګ کې وریډل او په دې لاره کې یې د خپلو ځانونو له قربانۍ هم ډډه ونکړه .

د ا.خ.د. ګ د مرکزي کمیټې عمومي منشي او جمهور رئیس او د هیواد د وسله وال پوځ اعلی سر قوماندان ملګري نجیب الله د ۱۳۶۵ کال د میزان په ۲۷ ورځ (۱۹۸۶ کال د فبرورۍ نولسمه) د دغو قطعو د یوه غونډ د ستنیدو په وخت کې د خپلې وینا په یوه برخه کې داسې وویل :

(( شوروي ورونو زموږ د تاریخ په ډیرو حساسو او ډیرو سختو شیبو کې زموږ خلک او ځوان رول، په داسې یو بحراني شیبه کې چې دښمنان باوري وو چې نور به افغانستان را تلونکی ونلري. د شوروي خلکو له موږ سره خپله ډوډۍ او مالګه ووېشله او هر ډول مرسته چې لازمه وه وې کړه په داسې شیبه کې چې د مرګ خطر وو، د شوروي خلکو خپل ډیر سپیڅلی ځواک یعنې خپل اولاد نه موږ ته را وسپارل هغوی د شوروي ګانو د هیواد بچیان د سولې او آزادۍ د ستر تیرو په توګه موږ ته را غلل او موږ یې وژغورلو .

هغوی واقعي انترناسیونالیزم او جګړه ییزه او انقلابي وطنپالنه وښوده خلکو له خلکو سره مرستې کړې دغه واقعي ورورې چې په دې نړۍ کې له هغه نه بل هیڅ ښه شی نشته .)) افغان پوځیانو د ستر شوروي د خلکو د بچیانو له تاکتیکي، تخنیکي پوهې او سوله را وړونکې تجربو څخه زیات شیان زده کړل، په داسې ورځ کې چې زموږ خلک د ثور انقلاب لسمه کالیزه نمانځي، ددې دوستۍ او ورورۍ د برم چې د هغې بنسټ یې و. ای. لنین او غازي امان الله ایښې دی او زموږ د پلرونو او نیکونو ارزښتناک میراث دی د زړه له کومې درناوی کوي .

ضرور ده یاده شي چې د انقلاب په کلونو کې له بهر نه د تیري په دوام کې د هیواد وسله وال پوځ د دښمن ته د وژونکو ګوزارونو ورکړي دي، له ستونزو سره سره، د وسله وال پوځ تحصیلي موسسو او اکمالاتي بیزونو پراختیا موندلې او د ا.ج دولت د وسله وال پوځ د منسوبینو کار او مبارزې ته د درناوي له پاره، د هغوی زړورو تنو ته چې مستحق و نښانونه، مډالونه او فوق العاده ترفیع ورکړي دي د ملي روغې جوړې د تګلارې په اعلام سره زموږ د خلکو په ژوند کې نوې پاڼه پرانیستل شوه زموږ ګوند او دولتي مشرتابه او خلکو له ملي روغې جوړې څخه ښه ملاتړ وکړ چې دغه پروسه همدا اوس دوام لري .

اوس زموږ خلک د تاریخ په حساسو شیبو کې دي د ژنیو خبرې بریالي پای ته رسیدلي او که چیرې مقابل لوري ښه نیت وښیي زموږ په هیواد کې به ډیر ژر د ورور وژنې جګړې او زموږ خلک به په بشپړه سوله او امنیت کې ژوند وکړي .

د ژنیو د موافقو پر بنسټ زموږ له هیواد څخه د شوروي اتحاد د محدودو ځواکونو د ستنیدو زمینه برابره شوې ده او لکه څنګه چې ملګري نجیب الله ویلي دي : (( د هغوی په ټولو ابعادو سره د مستقلانه کار کولو او د مستقلانه جګړې کولو د پیل دنده زموږ په وړاندې شته ده . ))

ددې کار تحقق د هغه څه غوښتونکی دی چې له یوې خوا د هیواد وسله وال پوځ د کمیت او کیفیت له پلوه غښتلي شوي او له بلې خوا څخه ملکي وسله وال ځواکونه چې د هغو په لیکو کې څه د پاسه ۱۵۰ زره تنه د وطن جنګیالي بچیان تنظیم دي زیات ټینګښت او پراختیا ومومي .

د وسله والو مخالفینو هر څومره زیات را بلل چې له نیکه مرغه چې د ملي روغې جوړې د تګلارې په رڼا کې له لسګونو زرو کمنو سره په پرله پسې توګه یو ځای کیږي، د کار یو بل لوری دی .

د اردو په کادر کې د سرحدي ځواکونو او د سرحدي او قبایلي ملیشو د ځواکونو ځواکمن کیدو ته ځانګړی تاکید ضرور دی .

او په پای کې د نوو شرایطو په حالت کې د وسله وال پوځ د ژوند په ټولو برخو کې بیا رغاونې ته اړتیا ده، په باور سره به د وسله وال پوځ په دري واړو برخو (اردو، څارندوي او د دولتي امنیت وزارت) کې د سوق او اداري د لوړو مقامونو مسوولین زموږ د هیوادوالو د اړتیا او غوښتنې په پوهیدو سره له وطن څخه د مستقلانه دفاع د زمینو د هر اړخیز تامین له پاره په دې لار کې هیڅ ډول هڅې ونه سپموي. د تاریخ آمرانه حکم، د وطن سپیڅلی غږ او د خلکو او انقلاب امر همدا سې دی .

واقعیت دا دی چې زموږ خلک او د ا.خ.د. ګ او د هیواد وسله وال پوځ او په یو خبره ټول وطنپال لوګوي، سیاسي ګوندونه او سازمانونو ته له ستر ازماینښت سره مخامخ دي، هغه آزماینښت چې تاریخ اتل افغانانو سره مخامخ کړی دی .

سپین



د وسله وال پوځ افسران او سرتیري په خاص نظم او دسپلین سره د ا.ج د ګوند او دولتي مشرانو په وړاندې د رسم‌ګذشت په حال کې .

# له هیواد نه بهر

## په مسکو کې کتنه

دشوروي اتحاد دکمو نست ګوند دمرکزي کمیټې دسیاسي بیرو غړي او دهغه هیواد دبهرنیو چا رو وزیر ملګری ادوارد شیوارد نادزې وړمه ورځ په مسکو کې دفدرالي آلمان دجمهوریت له سفیر سره ددغه سفیر په غوښتنه وکتل.

د فدرال آلمان سفیر دکتنې په بهیر کې دشوروي اتحاد دکمو نست ګوند دمر کزي کمیټې دعمومي منشي ملګري میخائیل ګر با چف په نامه دفدرال آلمان جمهوریت د صدراعظم هلمو ت کو ل شخصي پیغام ملګري شیوارد نادزې ته وسپاره.

ملګري شیوارد نا دزې او دفدرال آلمان سفیر دخپلې کتنې په تر څ کې دشوروي اتحاد . فدرال آلمان د دوه اړ خیزو اړیکو په شمول د ځینو نړیوالو لانجمنو مسئلو په با ب خبرې وکړې.

باختر

## په پاکستان کې دآسیا ـ افریقا دخلکو دپیوستون دسازمان درئیس څرګندونې

د پاکستان د آسیا، افریقاد خلکو د پیو ستون سازمان د افغا نستان د شاوخوا حالا تو دمسئلې د اوا رې په با ب د ژنیو دموافقو لاس لیك کیدل چې پدې وروستیو و ختو کې په ژنیو کې لاس لیك شوي لوړ وبلل او زیا ته یې کړه دغه سازمان باور لري چې دغه موافقې د افغا نستا ن دشاوخوا حالاتو د مسئلې د اوارې بهیر آسانوي.

دغه تکي د پاکستان ددغه عا مه سازمان رئیس ملك معراج خالق وړ مه ورځ په لاهور کې دیو مطبو عا تي کنفرانس په ترڅ کې څرګند کړ.

ده ټینګار وکړ چې دژنیو موافقو د آسیادسیمې د خلکو تر منځ د همکارۍ د زیا تې پرمختیا لپاره کلك بنسټ ایښې دی. ده غوښتنه وکړه چې پا ـ کستا نې مقامات باید د افغا ـ نستان د جمهور یت دګټو پر خلاف د پاکستان له خا ورې څخه دکار اخیستلو د مخنیوي لپاره اقدا ما ت وکړي.

ملك معراج خا لق د پاکستا ن له ټولو دمو کراتیکو ځوا کونو نه چې د سیاسي ګوندو نو، صنفي اتحاد یو اود محصلینو دسازما نو نواونورو نما ینده ګي کوي وغوښتل چې د پاکستا ن اود افغا نستا ن دجمهور یت تر منځ دژنیو د موافقو له مخې په سوله کې دګډ ژوند سترو هد فو نو ته درسیدو په خاطر خپلې هلې ځلې سختې کړي.

## دکنفرانس پرانیستل

یوه نړیواله جر ګه وړمه ـ ورځ دملګرو ملتو دساز ما ن په مقر کې دبې وسلې کو لو او پر مختیا په تیره بیاددریمې نړۍ له نظره دسو لې اوامنیت دمر بو طو مسئلو په باب دخبرو په خاطر پرانستله شوه.

په دغه جر ګه کې دنړۍ دیو زیا ت شمیر هیوادو ستر و سیا ستمدارانو ، مشرانو ،او پیژندل شو یو ټو لنیزو شخصیتو نو بر خه اخیستې وه.

اصلي رپوټ دسو سیا ـ لست انترناسیو نال درئیس ویلي برانت لخوا غو نډې ته وړاندې شو اوپه هغه کې د هر اړخیز امنیت له مفکورې سره دملاتړ په خاطر دهیوادو نو پر ستری او مهمې اړتیا ټینګار شوېدی.

ده په رپوټ کې زیاته کړه دمنځوا ټنو اولنډ واټنو ګو لیو دله منځه وړلو دتړو ن لاس ـ لیك کول اودبې وسلې کو لو په باب دخبرو دوام دبې وسلې کولو په ډګر کې مثبت اقدامات دي.

## سوریې ته دایران دبهرنیو چارو دوزیر دسفر پای

دایران دبهر نیو چارووزیر علي اکبر ولایتي سوریې ته خپل دوه ورځنی سفر پای ته ورساوه. ددې سفر په تر څ کې دسوریې له جمهور رئیس حافظ الاسد او دغه رازدهغه هیواد دبهر نیو چارولوزیر سره یو لړ کتنې او خبر ې کړ یدې.

علي اکبر ولایتي وویل ایران په خلیج کې دامریکا هر ډول اقدام ته غوڅ ځوا ب ورکړی او ایران پوره قدرت په واك کې لري چې دځان دفاع وکړي.

ده ادعا وکړ ه ایران په خلیج کې مینونه ندي ایښي البته پدې برخه کې د امریکا تورونو هدف دادی چې دخلیج په سیمه کې خپلې لاس وهنې برخای وښیي.

باختر

## دناټو تړون دغړو هیوادو فوق العاده غونډه

دبهر نیو چارو دوزیرا نو په سطحه دناټو دتړون د غړو هیوادو دشورا فوق العاده غونډه وړمه ورځ په بروسل کې ددغه تړون په مقر کې پرانستله شوه.

دغه غونډه په مسکو کې دشوروي اتحاد له مشرا نو سره دامریکا دمتحده ایا لاتو دبهر نیو چارو دوزیر جورج شولتز دخبرو دنتیجو په با بت دده دربو تحقاوریدلو په خاطر جوړه شوه.

ده وویل دامنیتي چارو ، دبشر دحقوقو، سیمه ییزو نښتو او دغه راز شوروي اتحاد ته دامریکا د جمهور رئیس رو نا لډ ریګن دراتلو ـ نکي سفر مربو طې مسئلې د شوروي اتحادله مشرانو سره دده د خبرو په اجنډا کې شا ملې وې.

جورج شو لتز ټینګاروکړ چې دیر غلیزو سترا تیژ یکو وسلو په باب په موافقې ته درسیدو په خاطر هلې ځلې آن مسکو ته دریګن له سفر وروسته دوام وکړي.

خو ده وویل تر کومه ځایه چې دی خبر دی د جمهور ی ریاست ټول کاندیدان دشوروي اتحاد او دامریکا د متحده ایالاتو له خوا په یر غلیزو ستراتیژیکو وسلو کې په سلو کې دپنځوس کمښت په بـا ب دتړون دلاس لیك کیدو ملاتړ کوي.

دامریکا دبهر نیو چـارو وزیر زیاته کړه عادي و سلـو په باب د خبرو دکیدو لپاره ښه لړلیدو نه شته.

جورج شولتز د شوروي اتحاد او دامریکا دمتحده ایا لاتـو ترمنځ په اړیکو کې ددیتا نـت لپارمداقلیم دجوړیدو دالرلیدو ـ نو په با ب دیوې پوښتنې پـه ځواب کې وویل پدې بر خـه کې پر مختګ شویدی.

پستي صندوق ۷۸۰ — بانکي حساب ۱۰۱۸ بر۹ — ددولتي مطبعې دویب آفسیت چاپ — دیوې ګڼې بیه [۲] افغانۍ

دهیواد زړورو او مبا رزو ښځو ـ دثور بریالي انقلاب دلسمې کالیزې په نمانځلو ګډ ا.ج له افسرانو او سر تیرو سره یوځای ګډون وکړ.

دبابه خان عکاسي

# دخلکو پر تمین جشن

## دانقلاب دلسمې کالیزې دنمانځلو دمراسمو له بهیر څخه دث . ا.ح دخبریال راپور تاژ

پرون سهار د کابل ښار

هیجاني شوی و څکه د کابل له ښار یانو څخه په لسو نو زره تنه په زوړ نده زیاتې مینې په زړونو شعارونو ، پلا کا ـ تو نو، پو سترونو سره چې دا ټول یې د ثور انقلاب ،سولې ورورۍ ، د وطن د تر قۍ او غوړیدو د ملاتړ بیانوونکې دی.

د ښار په واټو نو کې مارش کوونکو په منظمو لیکو کې جمع شوي چې یو ځل بیا د ا.خ.د.ګ ته د ثور انقلاب د برۍ په باب خپل تحسین او پیو ستون بیان کړي او خپله ژمنه تجد ید کړي چې د ثور انقلاب په لار کې په اتلو لۍ، زړور تیا ، ټینګ او په میړانه جنګیږي اود هغه لوړارمانونه ورو ستي برۍ ته رسوي.

پرون سها ته بچې دهیواد د وسله وال پوځ د قطعو او جزو تامو نو تعلیمي موسسې په پو ځي خاص نظم د لوژله مخې څخه چې په هغه کې د ا.خ.د.ګ او د ا.ج دولت ر هبران وو ، د هیواد د وسله وال پوځ د هر منسوب کلك او متین ګا مو نو ، د ثـور انقلاب په غو څ برۍ د تایید مهرولګاوه.

د کابل ښاریان چـې د خپلوا کۍ واټ په پوړ یو کې په منظمو لیکو کې نا ست وو د هیواد دوسله وال پوځ د زړورو او میړ نیو منسو بینو دغه د ثور د انقلاب او د هیواد دخمکې دبشپړ تیا سا تونکو هرکلې په اوږدو چکچکو سره کاوه ، د دوستۍ ، ورورۍ ، د جګړې بندو لو جنګیا لـې وسله وال پوځ ته یې خپل امید او باور څرګند اوه .

زموږ له سر حدې وطنوالو څخه یو نفر چې په زیاتـې خو ښۍ او خو شحا لۍ سره یې آتڼ کاوه او د ملي آتڼ ډلې هیواد کلیو او باندو تـه

یوه بې د هیواد د آبادۍ او غوړ یدو په خاطر په زړورتیا او اتلو لۍ او مشخصو ژ منو سره څر ګندو نې کوي.

د ځلورم لمبر کـامـاز د باروړلو د تصدۍ په تختروان کې چې د ثور د انقلاب له لس کلنۍ له ا مله یې دبر ـ تمینې نمانځنې په خاطـر مشخصې ژ منې در لودې لولو: دځلورم لمبر کاماز د باروړلو تصدۍ چمتو دمچې د ژنیو د خبرو د پر یکړو د بشپـړ تحقق په خاطر دراستنو شوو داړ تیا وړ لو مړني مواد د

دمارش کوو نکو لیکـې لاپسې خو ښۍ او منظمې بر ـ یښې ، ټو لو یې د شعارونو په ور کولو په پر له پسې ډول ویل: ژوندۍ دې وی د ا.خ.د.ګ، دا د ثور د انقلاب سازمان ور کوونکی او د ملي مصالحې دتګلارې مبتکر!

د دریمې نا حیې او سیدو ـ نکې په منظمو لیکو سرمالوژته نږ دې کیږي او ګوندي اود ا.ج دولتي رهبرانو ته خپلې مبارکي وړاندې کوي ، میر ـ سید حسن چې د شعارونو په ور کولو او دزیا تو احسا ـ

بهیر د چټکتیا په باب دا.خ.ـ د.ګ سرا سري کنفرانس جوړ شو ، د افغا نستان د خلکو لو یه جر ګه جوړه شوه. اساسي قانون تصو یب او د افغا نستان جمهور رئیـس انتخاب شو . د ا.ج د ملي شورا له پاره انتخابات پـه بري سره سر ته ورسیدل دا زموږ د انقلاب ډیر لوړ ارز ـ ښتو نه دي . اوتره ولو مهمه دا چې د ژنیو دموافقه لیکونو

په لاسلیك کیدو سره ، په افغا نستان کې د جګړې او ورور وژنې د بند یدو په خاطر کا ملا د قیق او عملي ګامونه او چت شول. اوس په افغا ـ نستان کې هیڅ یو عقل نشي کو لی په افغا نستان کې د نیکمر غۍ او سعادت په خاطر د ا.خ.د.ګ او د وګړ نیـز

صدا قت او سپیڅلتیا څخـه حا کمیت له اصو لیت،درستي ستر ګې پټې کړي.

د ثور انقلاب د خلکو په اراده ا و د خلکو په لور ګام په ګام پر مخځي . د کابل ښار او د کابل ولایت د زیار ـ کښانو مارش په ډیرې خوښۍ او زووزاو پر له پسې دشعارونو

په ور کو لو او د احساسا تو په څرګندولو پرون دلس نیمو بجو په شاو خوا کې پای ته ورسید.

دکابل ښاریان د ښار په واټو نو کې په حر کت کې شول. ښار په ځرا غونـو ښکلی شوی دی ، ټولنې موـ سسې او اداري ځانګړې ښکلا وي لري . د افغا نستان خلکو پرون د خپل وطن د ډیـرې سترې پیښې په باب جشن جوړ کړ او د خپل انقـلاب لو مړنی لسیزه یې تیره کړه.

او د انقلاب د یو ولسم پسرلي په لور یې ګام او چت کړ .

سږ کال پر جګړې باندې د دسو لې د غو ښې بریا کال دی ، سږ کال د ثـور انقلاب ډیرې لوړې لاس ته راوړنې له ځانه سره لري. سږ کال به زموږ د انقلاب د لسو کلو نو په تاریخ کې د بدلون ټکی وي. سږ کال د شوروي اتحاد د ورونو او انتر نا سیونالیستو

خپل هیواد ته د با عا فیته ستنیدو کال دی، او په پـای کې سږ کال د ثور د انقلاب د ورو ستي برۍ د حکم کال دی.

نجیب

### دافغانستان خلك سږ کال دسولې او روغې جوړې په شرایطو کې دانقلاب کالیزه نمانځي

دمستو لو له پاره یې چیغـې و هلې، زمایام ځانته ورواړاوه.

هغه راته وایې ، زه ستا یو سر حدی و طنوال یم ، نن ورځ په لسو نو زره تنـه افغا نان د مارش کوو نکو په لیکو کې جمع شوي اودانقلاب دلس کلنۍ جشن لمانځي.

زه د یوه افغان په تو ګه غواړم په وګړ نیزو سیمه ـ ییزو سندرو اوملي اتڼ سره په دې جشن کې خپله ونډه تر سره کړم.

د مارش کوونکو لیکې هره

ورسوي او دا رنګه ژمنې په لسو نو او سلو نو شما رونو او روان تختو نو کې لو ستل کیږي . دکابل ښار اود هغه دشاوخوا د ولسوالیو ناحیو او سیدو نکې، همدا رنګه د ولایت او سیدو نکې ، کار ـ ګران او کار مندان چې ځو میا شتې دمخه یې د ثور د انقلاب د لسمې کالیزې د هر کلي له ا مله ګ وزار یز او ابتکاري کارونه پیل کړي وو هغوی هڅه کو له چې په ډیره ښه تو ګه د ثور دانقـلاب لما نځنه و کړي او دغه هیلې اوس ګټورې کیږي .

ساتو په څرګندو لو د لوژ له مخې څخه تیریده وو یل: د ملي مصا لحې د تګلارې داعلام په اړوند د ا.خ.د.ګ ابتکار، دثورد انقلاب د برۍ په باب زموږ ایمان او باور سل ځلې زیات کړ .

د افغا نستان خلکو څه د پاسه دیوه کال په موده کـې ولیدل چې د افغا نستان د تاریخ نبض تـر پخوا لا زیات خو ځنده دی او په لسو نـو ستري او تاریخي لاس تـه راوړنې د افغا نستان دخلکو په برخه شوې دي ، په دې موده کې دملي مصا لحې د

کابل ښاریا نو په پر تمیـن مارش سره دثور انقلاب لسمه کالیزه و نمانځله .

دشیر شاه عکاسي

### دنویو ښوونځیو جوړول

دتنا جور سلطاني ۲٤ ټـو ـ لګیز ښوونځي نو ی و دا نـی ددولت دپر مختیا یې بودجې دشپږ څلو یښت ملیونه افغا ـ نیو په لګښت جوړه اووړمه ـ ورځ دثور انقلاب دلسمـې کالیزې په ویاړ د مرا سمو په ترڅ کې دصد راعظم دمر ـ ستیال ملګري عبد الحمید محتاط لخوا پرانستل شوه .

دغه ښوونځي په عصر ی توګه او د بریښنا ، او بـو ـ رسولو او کانالیزا سیون په سیستم سمبال دهلمند دسا ـ ختماني دستګاه لخوا ددوو کلونو په موده کې جوړ شوی دی.

دغه ښوونځي دیو زرو اتو سوو زده کوونکو لپاره ځای لري .

* * *

دځر خې پله دنوآباد دځلور ـ ویشت ټولګیز ښوونځي نو ی ودانۍ چې دجو ړولو کاریې په ۱۳٦٥ کال کې پیـل شوی و، پرون دثور انقلاب د لسمـې کالیزې دهر کلي له امله دصدر ـ اعظم د مرستیال ملګري عبد ـ الحمید محتاط لخوا پرانستل شو

دغه ودانۍ چې په عصـر ی ډول د بریښنا ،اوبو رسولو او کانالیزا سیون په سیستـم سمباله ده او دښوونې او رو ـ زنې دسا ختماني دستګاه لخوا جوړ شوې ده دیوزرواتو سوو ـ زده کوونکو لپاره ځای لري.

دغـه و دا نۍ په ۲۳۷۸۰ مربع متره ځمکه کې چې سا ـ ختماني حجم یې ۱۰۵۳۱ مکعب متره دی ددولت له پر مختیایي بودجې څخه دڅلویښت ملیونو افغانیو په لګښت جوړه شویده.

## دور کتون پرانیستل

دوزیر آباد دپروژې دور کتون نوې ودانۍ چې ددولت له پر ـ مختیایي بودجې څخه دیو څلو ـ یښت ملیو نه او اتو لکو افغا ـ نیو په لګښت جوړه شوې پرون دثور انقلاب دلسمې کا لیزې دهرکلي له امله دیولړ مراسمو په ترڅ کې دصدر اعظم د مر ـ ستیال ملګري عبد ا لحمید محتاط لخوا پرانستل شوه او ګټې اخیستلو ته وسپارله شوه.

ددغې پروژې دودانولو کار په ۱۳٦٥ کال کې دښوونې او روزنې دسا ختمانې دستګاه لخوا پیل او له پلان سره سم باید ددریو کلونو په موده کې بشپړ شوی وای خو د زیاتـو هلو ځلو او کار له امله له ټا ـ کلې مودې نه لس میا شتې مخکې دثور انقلاب دلسمـې کالیزې دهر کلي له امـله د استفادې وړ وګر ځیده .

دتحریر دهیأت ترنظر لاندې
مسوول مدیر: م.ح. بارق شفیعي

تیلفونونه
مسوول مدیر: ٦٢٤٧٤ — مسوول سکرتر: ٦٣٦١٤ — اطلاعاتوځانګه ٦١١١٨
لومړی مرستیال: ٦١٤٥٨ — دلیکونوځانګه: ١٧٠٣ — سوچبورد ٦١٨٧٨
ویش اوشکایتونه: ٦٢٨٥٩